تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة
# في
# حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابو العزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغہ تقبلہ اللہ

محرر و مرتب

سید محمد ثواب
ابن سید اکاخیل باچا صاحب

دوھمہ حصہ

ناشر

مدرسۃ حذیفۃ الاحناف

# مسئلة النداء الى الغائب :

اعوذ بالله من الشيطن الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم : ﴿وَأَذِّن فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالًا وَعَلَىٰ كُلِّ ضَامِرٍ يَأْتِينَ مِن كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ﴾ الحج آيت : ۲۷.

بله مسئله چې زير بحث يې ګرځوو هغه مسئلة النداء الى الغائب ده پاکستان کې دا ډيره معروفه ده ډير مسلمانان په مساجدو کې په ګاډو کې د شِعار او د نبي لپاره يارسول الله يا محمد ليکي.

اهل زيغ چې څو مره جماعات دي او حتى بعضې حنفي ورونه د نه مطالعې په وجه او يا بعضې د بريل د تعصب له وجې نه دې ته شرکي عقيده وايي او ځاى په ځاى يې مساجدو او ګاډو کې مونږ ګورو چې شعاراً يا محمد ليکلو سره د يا سره ظلم شوې وي هغه يې ترې کټ کړې وي نو اولاً دي مسئله کې تفصيل ذکر کوم چې په څو الفاظو سره نداء غائب ته کيږي او څه حيثيت لري او بريلوي حضرات دي هم دې ته متوجه شي چې دا ټول په يو مثابت کې نه دي.

د يا غائب ته دا آواز په څو طريقو باندې دې د نبي اکرم ﷺ په اسم مبارک کې او يا په صفت مبارک کې به دغه د يا استعمال او د هغې قسمونه ذکر کړو يو د الصلاة والسلام عليك يارسول الله ، غائب چې نبي اکرم ﷺ دي د يا آواز ورته وشو خو صلاة او سلام وويلې شو په نيت د حضورِ خارجي جسدي سره نه بلکې په نيت د حضورِ علمي سره چې دغه ويونکي د صلاة او د سلام د خپل ذهن په کوټه کې رحمت عالم حاضر کړي متصور في الذهن يې کړي او دې ورته مخاطب شي السلام عليك يارسول الله دا الفاظ ويل جائز دي باتفاق العلماء بين العرب والعجم وبين الديوبندية والبريلوية دې کې د چا هم څه نزاع نشته ده چې الصلاة والسلام عليك يارسول الله په نيت د حضورِ علمي باندې چې ذهن کې متصور شي او مخاطب شي جائز دي.

البته بريلوي حضرات دا شِعار ګرځولې دي ديوبنديان بعضې يې نه وايي بعضې ورسره تعصب کوي دې ته پنجابي درود وايي نو دې الفاظو ته پنجابي درود ويل ظلم دي له

نن نه شپږ سوه (۶۰۰) کاله وړاندې علامه سمهودي صاحب تیر شوی دی په وفاء الوفا باخبار دار المصطفی ﷺ جلد ۴ صفحه ۳۴۹ کې
هغه دا ذکر کوي چې صلاة او سلام په رحمت عالم باندې لوستل کیږي :

بصیغتین . په دوه صیغو سره .

صیفة الغیاب وصیغة الخطاب . یو د غیاب صیغه ده بله د خطاب صیغه ده هر چې د غیاب صیغه ده هغه دا الفاظ دي چې ﷺ هر چې د حضور او خطاب صیغه ده د هغې الفاظ دادی چې ووایي : الصلاة والسلام علیك یا رسول الله ، نو وایي دا دواړه جائز دي .

سواء کان قریباً معه او نائیاً عنه . که سړی د روضې سره قریب وي او که د روضې نه لرې وي .

نو ویلې شي چې :الصلاة والسلام علیك یا رسول الله .
دا صرف د غه شبهه د دوی د فع کوم چې وایي دا پنجاب نه راغلې دروند دي نه دا پخوا نه په عرب عجم کې معروف وه دا زمونږ او ستاسې ټول فقهاء دا مونږ ته تعلیم راکوي د آدابو د زیارت المصطفی تعلیم څه راکوي چې مونږ به ودریږو نبي اکرم ﷺ ته السلام علیك یا شفیع المذنبین السلام علیك یا رحمة للعالمین ، ډیر الفاظ زمونږ د فقهې معروف کتاب عالمګیري او بحر الرائق او زمونږ شامي دي ټولو را اخیستې په آدابو د زیارة المصطفی باب زیارة النبي ﷺ کې یې دا الفاظ لیکلي .
البته که یو وهابي دا خبره کوي چې دا الفاظ په آحادیثو کې نه دي راغلي نو هغه ته دا ویل په کار دي چې ته مانځه کې کوم تشهد کوي او بخاري د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه تشهد چې دا معروف تشهد او جماهیر پرې قائل دي تشهد دغه دي چې عبد الله بن مسعود نقل کړې دي نو په هغې کې الفاظ څه شي : السلام علیك ایها النبي ، سلام دې وي په تا باندې یا نبي دا څه شي دي دا خو ستا تأویلات دي چې دا خو حکایت من الله تعالی او زه نقل کومه که تا حکایت من الله وکړو ته ممتثل د وسلموا تسلیماً د سره یې نه ییا او دې ځای کې

صحابه کرام ته فرمايي : يا رسول الله عرفنا السلام عليك يا ايها الذين امنوا صلوا عليه وسلموا تسليماً امر راغلى دي امت لره په صلاة او سلام باندې .

ددې تشهد د تعليم نه بعد صحابه کرام عرض کوي :

عرفنا السلام عليك . مونږ تا باندې د سلام الفاظ وپيژندل چې هغه دا دي چې : السلام عليك يا رسول الله .

کيف نُصلي . صلاة به څنګه وايو نو د درودِ ابراهيمي تعليم يې ورکړو .

په دې ځاى باندې شامي بحر الرائق طحطاوي دا ليکي چې کله مصلي دې ځاى ته راشي : السلام عليك أيها النبي دې به انشاء کوي اخبار به نه کوي انشاء به کوي ايجاد ما لم يوجد احداث د ما لم يحدث دې به وايي دلته ځان ته به نبي اکرم ﷺ متصور کړي زه درباندې سلام وايم اى د الله نبي دا نه چې دې حکايت من الله تعالى کوي او دې به ځکه دلته انشاء کوي چې دې ممتثل د امر د باري تعالى شي چې : وسلموا تسليماً.

که دې اخبار وکړي نو اخبار خو د عبادت نه عبادت نه دي مثلاً تا ته د اقيموا الصلاة امر متوجه دي او ته پنځه وخته لمونځ نه کوي او د غلام حضرت مولانا د مانځه قيصې خلکو ته کوي ته ممتثل جوړيږي ته په دې امر عامل جوړيږي امتثال څه ته وايي عمل بالامر ته په دې امر عامل جوړيږي .

امتثال څه ته وايي عمل بالامر ته وايي ته په دې امر کله عامل جوړيږي تا ته د اقيموا الصلاة امر متوجه دي او ته زما د مانځه قيصې کوي ته د جبرائيل عليه السلام د امامت قيصې خلکو ته کوه ته د محمد مصطفى ﷺ د بيت المقدس هغه قيصې ورته کوه نو ته ممتثل پرې جوړيږي نه جوړيږي کنه هله به د اقيموا الصلاة عامل جوړ شي چې په خپله دا عمل وکړي چې دې ته موسوچ وي ګوره دوي دا غلط تأويل دلته کوي چې دا خو اخبار عن الله تعالى .

دا خو زمونږ حکایت کوو چې ته حکایت په دې ځای کې کوي نو ته ممتثل د وسلموا تسلیماً نه یې ځکه چې اخبار د عبادت نه چا هم عبادت نه دي ګڼلي خاصکر په او امرو کې چې درجه د فرض او وجوب لري هغلته خو حکایت او قصه د عبادت نه له سره عبادت نه دي .

مثلاً ما زر (۱۰۰۰) کرته درود ویلي په ما زر رحمته نازل شو تا زما د درود حکایت بل ته وکړو په تا دوه رحمته هم نه نازلیږي ته خو حکایت له درود نه کوي کنه ما سلام ویلي زه ممتثل د وسلموا تسلیماً نه یې ته زما د سلام قصه بل ته کوه نو ته خو ممتثل نه جوړیږي کنه کله چې دې ځای ته ته راشي : السلام علیك ایها النبي ، تا ته د غه آیت متوجه شي وسلموا تسلیماً .

اوس که ته مُنشي یې او صاحب د انشاء یې او مخبر نه یې نو ممتثل د امر یې تا سلام واچوه تا په آیت عمل وکړو او که تا دلته حکایتاً عن الله تعالی قصه دې وکړه نو وهابیان دلته څه تصور کوي مونږ خو چې دلته راشو دا تصور کوو نبي اکرم ﷺ دي خپل ذهن کې راولو وایو رب کریم مونږ ته امر کړې دي ستا په ذات باندې د سلام السلام علیك ایها النبي سلام دې وي په تا باندې یا رسول الله .

مونږ داسې وایو وهابیان د څه تصور کوي دلته چې راورسیږي یا رسول الله زه درباندې سلام نه وایم ځکه بیا غائب ته یاء سره آواز راځي شرک لازمیږي فقط د رب کریم حکایت کومه چې هغه درباندې ویلي وه تشه قصه کومه نو دا به څنګه ممتثل د وسلموا تسلیماً شي .

نو که څوک وایي چې دا سلام په دې الفاظو ثابت بالحدیث نه دي نو دا ثابت بالحدیث په تشهد کې شته دي او که ته وایي چې نه دا خو داخل د مانځه کې راغلي خارج کې نه منمه نو ته خو دې ته د شرک عقیده وایي د حرامو عقیده وایي دا هم اوس د چا مسلک دي چې اله العالمین د مانځه په داخل کې په شرکیاتو امرونه کړې دي یا یې په حرامو امرونه کړې دي .

تحقیقي جواب دادی چې الفاظ د دعاء د حمد الفاظ د سلام باتفاق العلماء مختص بالنص نه دي ته نر شه خطبه د جمعې جوړه کړه له ځان نه یې جوړه کړه تا ته جائز دي سره دي په آحادیثو ثابته نه وي تا ته جائز دي یا تقریر کوي او د تقریر نه مخکې خطبه لولي له ځان نه

یې جوړه کړه غلط الفاظ مه وایه تا ته جائز دي دغه شان صلاة او سلام په محمدي عربي مختص بالنص نه دي افضل جدا خبره ده چې بهتر درودِ ابراهیمي دي خو ته په خپلو الفاظو کې په رحمت عالم صلاة سلام ویلې شي.

دغه شان الفاظ د دعاء دي دا مختص بالنص نه دي ته چې دُعاګانې کوي نو دا ټولې دعاګانې په آحادیثو ثابتې دي کله ثابتې دي ته به پښتو کې دعاء کوي له ځان نه لګیا یې چا تا ته بدعتي ویلې دي چا له ګریوانه نیولې یې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خو دعاء داسې نه وه کړې تا ولې کړې نو جواب څه شي دي الفاظ د دعاء مختص بالنص نه دي ته یې د ځان نه هم کولې شي.

دغه شان دا تاسو چې تقاریر کوي همدا وهابیان چې د جمعې خطبې لولي دا هر خطبه دي مختص بالنص په حدیث کې مونږ ته وښایي یا هر وهابي چې تقریر ته پاڅیږي او تقریر نه مخکې خطبه وایي نحمده ونصلي علی رسوله الکریم یا دې نه اخوا ته څه نور الفاظ وایي دا واي ثابت بالحدیث دي ددې جواب به څه شي وي الفاظ د ثناء مختص بالنص نه دي ته یې له ځان نه هم جوړولې شي.

دغه شان د صلاة او سلام الفاظ چې دي دا مختص بالنص نه دي که په نص راغله فبها کنې ته د ځان نه جوړ کړه خو چې د شریعت د اصولو مخالف نه وي ته هغه ویلې شي اولاً السلام علیك یا رسول الله نص نه ثابت دي که ثابت نه هم شي چیرته نو الفاظ د دعاء د صلاة د حمد مختص بالنص نه دي هغې کې یو سړي خپله هم دې ته الفاظ وضع کولې شي.

پاتې شوه دغه یوه جزیه چې یو سړي د دیوبندیت په مینه دومره مست وي چې هغه به وایي داد پنجاب نه راغلې درود ده نه یې منمه نو هغه ته ما د علامه سمهودي جواب ورکړو چې دا شپږ سوه (۶۰۰) کاله وړاندې هم ویلې شوې دي چې السلام علیك یا رسول الله هغه ته ما د عالمګیري او د شامي جواب ورکړو چې هغوي اداب زیارت المصطفی کې د السلام علیك یا رسول الله الفاظ ذکر کوي نو یو الصلاة والسلام علیك یارسول الله شو دا بهترین درود دي دا هغه درود دي چې یو عظیم سبب د ازدیاد د حب مصطفی دي که د چا په زړه کې د محمد مصطفی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مینه کمه وي او غواړي چې زما زړه کې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مینه

زياته شي نو دادې په صحيح حضور باندې د الصلاة والسلام عليك يا رسول الله دا ورد شروع کړي خو په حضور باندې رسول الله ﷺ مبارک ته دې په ذهن کې حضور ورکړي او مخاطب دې شي هغه ته بيا دې ګوري.

ما چې کله هم په کمال حضور باندې دا شروع کړي دي نو ما ذات د محمد مصطفى ﷺ بيا خوب کې کتلې دې الحمد لله يولس (۱۱) ځل ما د نبي اکرم ﷺ ملاقات په خوب کې کړې دې اله العالمين دې مونږ او تاسو ته بار بار نصيب کړي نو يو دا الفاظ دې چې الصلاة والسلام عليك يا رسول الله ﷺ دې کې شک مه کوي.

او که يو سړي وايي چې ديوبنديانو نه دې ويلې نو هغه د ياره مونږ د ديوبند په کتابونو کې معاصرينو کې مولانا حمد الله ډاګي صاحب پيش کوو چې په البصائر کې د الصلاة والسلام عليك يا رسول الله ويلو ته مستحب ويلې دي له ده نه چې لږ ور مخکې شي د هغه لپاره مونږ مولانا زکريا صاحب شيخ د داجوي صاحب پيش کوو چې هغه په تبليغي نصاب کې په فضائل درود کې د الصلاة والسلام عليك يا رسول الله ته مستحب ويلې دي نو دا هغه کم چې د ديوبند په مينه مست دي کفى بهم قدوة دوي پسې دې اقتداء وکړي کنه.

دويم: يا رسول صلى الله عليك وسلم دا الفاظ دغه شان جائز دي لکه څنګه چې مخکې الفاظو کې کوم تقسيم ما وکړو فقط هلته صلاة او سلام مقدم يا رسول الله مؤخر او دلته يا رسول الله مقدم صلى الله عليك وسلم مؤخر يو معنى ده تاسو خو يې لږ معنى ته هم ګوري کنه.

يو امي سړي ما ته ووېل چې دا صلاة او سلام څنګه دي نو هغه ته ما ووېل په معنى يې پوهيږي وايي په معنى يې نه پوهيږم خو خلکو را ته شک اچولې دې ما ورته ووېل چې د دې دا معنى ده چې په رسول الله ﷺ مبارک به په ذهن کې راولي وه به وايي چې اى د الله رسوله په تا دې درود او سلام وي.

ما ورته ووېل که ته علم نه لري عقل خو لري کنه وايي هاو ما ورته ووېل چې ته لږ سوچ وکړه چې دا تا بنه خبره وکړه او که بده واي دا خو سمه خبره ده نو دې کې څه شرک دې څه ګناه ده په کې او که ته دا وايي چې يو چا ته حضوري ذهني ورکول شرک دې بيا خو دې دا ټول مصنفين کافر کړه.

تاسو ویلې دي دا یا خو د خطاب لپاره استعمالیږي خو شرط په دې کې رؤیت بصري او حس یو اهل لغت هم نه دي ویلې دیوال اخوا چې یو سړي وي د حِس نه غائب دي ته ورته یا وویلې شي کنه یا فلان یا زید ولې ورته نه شي ویلې.

نو یا کې خو خطاب دي لیکن حس بصري په مخاطب کې چا نه دي شرط کړې په یا کې او په هذا کې څنګه دي واحد مذکر محسوس بالبصر تولیې شرط کوي او دا خطبو کې چې کله مقدمو کې راشي اما بعد فهذه اما بعد فهذا الرسالة دا فهذه چې دا هر مصنف وایي تاسو پرې اعتراض کوي کنه چې کتاب خو نشته دي فهذه چا ته راجع کوي دا خو د واحد مذکر محسوس بالبصر د پاره وي.

نو هغه جواب څه شي کوي جواب دا کوي وایي دا هغه مرتبې ذهنې ته راجع دي دا د کمال تیقن د علم د مصنف نه په ما سیأتي رساله باندې هغه معقول یې په مرتبه د محسوس ګرځولې او د هذا اشاره یې ورته کړې نو مرتبې ذهني کې یو چا ته حضور ورکولو ته د هذا اشاره جائزه شوه کنه نو چې هر کله فهذا کې حس بصري شرط وه او مرتبې ذهني حضور ته رجوع روا شوه.

نو په یا کې خو حس بصرې بیخي شرط هم نه دي کنه نو بیا په کې حضور ذهني ورکړه او د یا خطاب وکړه ورته او که دا به هم شرک وي د رسول الله ﷺ مبارک په ذهن کې تصور به هم شرک وي عیاذا بالله

دا به هم د چا رایه وي چې رسول الله مبارک به اوس مونږ په ذهن کې هم نه راولو ځان د پاره یا په هغه ته خطاب هم نه کوو نو یا رسول الله ﷺ او د الصلاة والسلام علیك یا رسول الله ﷺ دا څه فرق نه لري فقط یو کې صلاة مقدم دي بل کې خطاب مقدم دي دا یو شان جائز دي.

دریم: یارسول الله فقط چې صلی الله علیک وسلم ورسره ونه ویل شي نو یا رسول الله فقط دا دوه قسمه دي: (۱) یو شعاراً دي، (۲) بل نداءً دي:

شعاراً دا روا ده نبي د پاره چې نبنه وګرځېږي چې دې مسجد والا د کومې ډلې خلک دي یا بل ځای کې د نبي لپاره ولیکلې شي نو شعاراً یارسول الله بدون د نداء او مطالبې نه جائز دي دلائل به پرې راشي.

او بل یا رسول الله نداءً او وروسته له هغې نه څه الفاظ مذکور نه وي صلاة نه وي نو دا چغه ده بلا فائدې هيڅ فائده نه لري ولې په هره نداء کې مقصود بالنداء ذکر شرط دي او د مقصود بالنداء نه ده کړي اوس یو سړي وايي یا رسول الله معجزتاً نبي علیه السلام ته ورسیدله هغه واوریدله هغه تا ته مخاطب شو څه غواړې امتي امتي لا له ځان نه هم نه ده خبر نو امتي لې وروسته بيا چغه کړي یا رسول الله هغه بيا ورته متوجهې شي څه غواړې امتي امتي بيا څه نه وايي نو چې دريم ځل ته دا چغه ووهي دا خو ته مسخرې کوي دا خو بيا مسخرې شوې ګوري يو شعاراً ده شعار مستثنی ده هغه بیل څیز دي.

یو نداءً دي نو نداءً وروسته به مطالبه د شفاعت بيا ذکر کوي چې مطالبه د شفاعت هم نشته او صلاة سلام هم نشته او محضِ یا رسول الله صلی الله علیه وسلم نو دا بې فائدې چغه ده دي څه فائده نشته دي.

او بل یا محمد صلی الله علیه وسلم دي یا محمد صلی الله علیه وسلم هم په دوه قسمه دي: (۱) شعاراً دي، (۲) او بل نداءً دي یا محمد صلی الله علیه وسلم شعاراً دا جائز دي په غزوه یرموک کې ۴۱۰۰۰ صحابه کرام او تابعین رضی الله عنهم شعار یا محمد صلی الله علیه وسلم ويلې حواله به وروسته راشي.

او (۲) بل نداءً دي نو نداءً یا محمد صلی الله علیه وسلم د اخص الخواصو لپاره چې محمد اسم ذات عالمي وانخلي په معنی د ستایلې شوي صفتي معنی یې واخلي جائز به شي په بعید تأویل سره خو نداءً قرآن کریم منعه کړې دي چې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم لا تدعه مه بلي ده لره په شان د بلنې ستاسې بعضې بعضو لره.

ددې تفسير ابن عباس رضی الله عنه دا کوي لا تقولوا یا محمد صلی الله علیه وسلم. یا محمد صلی الله علیه وسلم مه وايي ځکه دا بې آدبي ده لکه ته چې يو چا ته په نوم او از کوې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم د اله العالمین مخلوق دي او هغه یې خالق دي نبي علیه السلام عابد دي او الله پاک معبود دي تمام قرآن عظیم کې یې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ته د یا محمد آواز نه دي کړې دا

امت ته تعليم وركوي يا ايها الرسول شته يا ايها النبي شته خو يا محمد ﷺ نشته
كه څوک وايي چې جوماتونو ياګاډو وغيره چې ليکل شوې هغه شعار دي هغه نداء نه دي
هغې ته ناروا مه وايه هغه شعار ده د هغې منادى خو د سره معلوم هم نه دي چې دا نداء چا
کړې ده او په نداء کې مقصود بالنداء ضروري وي هغه څه غوښتې دي هيڅ هم په هغې کې نه
وي هغه نښه ده او د نبي لپاره يا محمد ويل جائز دي د بلنې او نداء په نيت باندې بې آدبي
ده.

دا نچوړ ما بيان کړو اوس دلائلو ته ګوري:

اول دوه نصوص چې زه يې ذکر کوم دا زمونږ په دعوه دال نه دي بلکې د مخالفينو د
دعوى بنياد نړوي مخالفين خو عوامو ته دا ذهن کې اچولې ده چې غائب ته د يا آواز شرک
دي اوس دا چا ويلې چې غائب ته د يا اواز شرک دي هسې له ځان نه يوه خبره يې خوره کړې
ده نو مونږ په دغه دوه نصوصو باندې ددوي دا اصل نړوو چې ستاسو دا خبره بې بنياده ده
دروغ ده او له ځان نه ده چې غائب ته د يا اواز شرک دي.

اول سورة حج (۲۷) نمبر آيت: ﴿وَأَذِّن فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ﴾ اعلان وکړه اى ابراهيم عليک
السلام خلکو کې د حج.

﴿يَأْتُوكَ رِجَالًا﴾ چې راځي به دا خلک تا ته پيدل.

﴿وَعَلَىٰ كُلِّ ضَامِرٍ﴾ په هر ضامر اوښ باندې.

ضامر او مضمر خو هغه اوښ او اس
ته وايي چې ډيرې منډې ورکړې او د ډير تړلينګ د لاسه نرې شي نو ګويا کې دوي اوږده
سفرونه کړي دي او د تړلينګ د لاسه خوار شوې وي ضامر ورته ويلې شي ﴿وَعَلَىٰ كُلِّ ضَامِرٍ﴾
په هر لاغر او خوار تعليم يافته اوښ باندې.

﴿يَأْتِينَ﴾ چې راځي به تا ته.

﴿مِن كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ﴾ (سورة الحج آيت: ۲۷) د هرې ژورو لارو او ناوونو نه روان به وي
ستا په طرف باندې امر راغې.

زاد المسير في علم التفسير جلد ۳ صفحه ۳۷۹ په دې ځای کې مفسرین اتفاق لري چې کله ابراهیم عَلَیْهِ السَّلَام له بناء د بیت نه فارغه شو رب کریم ورته امر کوي چې اعلان وکړه خلکو کې خلک نشته دي څنګه اعلان وکړي.

فقال ابراهيم يا رب وما يبلغ صوتي؟. آواز به زما نه رسيږي ورته.

قال اذن وعلي البلاغ. وكړه اعلان رسول په ما دي.

فصعد. پورته شو.

على جبل ابي قيس. جبل ابي قيس ته.

قال. وي ويل.

يا ايها الناس ان ربكم قد بنى بيتاً فحجوه.

يا ايها الناس خلک نشته غائب دي او د يا آواز ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام کړې دي چې کوم سړي دا وايي چې غائب ته د يا آواز شرک دي.

﴿ مَا كَانَ إِبْرَاهِيمُ يَهُودِيًّا وَلَا نَصْرَانِيًّا وَلَٰكِن كَانَ حَنِيفًا مُّسْلِمًا وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴾

ته لا دنیا کې وي هم نه د سره د پلار په شا د مور په رحم هغې ته خدای تعالی ورسول.

فاسمع من في أصلاب الرجال وأرحام النساء. ټولو ته کوم چې د خدای تعالی په علم کې وه چې دا به حج کوي هغوي ته یې ورسول او هغوي هلته په لسان د حال ګویانه شول.

لبيك اللهم لبيك. نو دا لبیك اللهم لبیك دا په شا ګانو د پلارانو کې هغه بچو چې کم حج کې نصیب وي چا چې پنځه ځل د غه وخت کې تلبیه ویلې هغه به پنځه ځل حج ته ځي.

عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به ٦٢ ځل تلبیه ویلې وه نو هغه ٦٢ ځل حج ته لاړو چې چا څومره ویلي هغومره ځل به ځي او چې چا نه ده ویلې که بیت الله شریف سره نزدې اوسیږي مکه مظمه کې هم حج به یې نصیب نه وي.

ما ته یو کس حکایت وکړو او لس (۱۷) کاله یې هلته تیر کړې وه وایي زمونږ کفیل وه وایي هر کال به مونږ ورته ویل چې راځه ته خو دلته اوسیږي مکه معظمه کې وه وایي څه بل کال ته به یې وکړم وایي مړ شو خو حج یې ونه کړو مکه معظمه کې اوسیږي او حج نه کوي نو

دا ځکه چې د هغه روح لبیک ویلې نه وي نو دا مونږ ددوي اصل ونږوه چې کوم سړي وايي چې غائب ته به یا سره آواز شرک دي او زمونږ په دعوی دال هم دي ځکه خلک نشته آواز ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ کړې دي دوي کله کله دا خبره هم کوي چې دا ژوندي دي دا مړ دي.

ما سره یو وهابي په ګاډي کې بحث وکړو ما ورته وویل چې هسې د کارغه مړي قدرمن دي که د انبیاء اولیاء مړي واي د انبیاء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ مړي ما ورته وویل چې زه به درته د قرآن کریم نه درته ثابته کړم چې چکنې شوې کارغه ته هم یو پیغمبر په یا سره آواز کړي چکنې شوې به یې کارغه به وي خو بیا به هم په یا سره آواز ورته شوې وي نو بیا مې دا ایات ورته پیش کړو سورة بقرة آیت : ۲٦۰ : ﴿قَالَ فَخُذْ أَرْبَعَةً مِّنَ الطَّيْرِ﴾ ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته امر دي څلور مرغان را واخله.

هغې کې اوه (۷) قوله دي چې هغه کوم مرغان وه.

﴿فَصُرْهُنَّ إِلَيْكَ﴾ اى فقطعهن ثم اجمعهن اليك. ټوټه ټوټه یې کړه ځان ته میلان ورکړه راغونډ یې کړه.

﴿ثُمَّ اجْعَلْ عَلَىٰ كُلِّ جَبَلٍ مِّنْهُنَّ جُزْءًا﴾ بیا وګرځوه په هر غره ددوي څه حصه.

﴿ثُمَّ ادْعُهُنَّ﴾ بیا وه بله دوي لره.

﴿يَأْتِينَكَ سَعْيًا﴾ راځي به تا ته په منډه باندې.

اوس یې چې دا چکني کړل په غرونو باندې کیښودل ورته وایي وي بله اوس کارغه څنګه بلي د بللو څه طریقه ده ټول مفسرین په دې ځای دا ذکر کوي:

یاغراب ائتني یا حمامة ائتني. هغه دي مړه دي چکني دي کارغه دي غائب دي هغه ورته آواز کوي که هر غائب او مړي ته په یا سره اواز شرک وي نو دې سره به څه کوو.

باړه کې ما په ایف ایم F.M ریډیو د یارسول الله په موضوع بیان کړي وه نو دا ایات مې ویلې وه خو دا ډیر بې آدبه قوم دي شاکر منیر سره نوره لاره نه وه زما د ادلهوو د جواباتو هلته ما ۱۹ دلائل مسلسل پیش کړې وه نو په صبا ورځ باندې دې زما د خبرو جواب کوي ډیر معقول جواب یې وکړو.

وایي دوي دا پیش کړل چې ابراهیم علیه السلام کارغه ته آواز کړې دي نو هغه خو دا کارغه رانیولې وه چکني کړې وه بیا یې ورته آواز کړې وه تاسو دا پیغمبران راونیسي ټوټه ټوټه یې کړي بیا ورته په یا سره آوازونه وکړي عیاذاً بالله .

دا په ایف ایم باندې ددې بې دینه جواب وه چې ریکارډ شوې هم ده نو دا بیا ددوي جواب یې په مقابله کې دا خو ما ستا اصل نړولې ده ته د مناظرې په دلائلو او شواهدو څه پوهیږي کله مناظره کې سړي خپله موضوع باندې وایي کله د مقابل جانب بنیاد نړوي زه ستا دعوی نړومه چې ته وایي یا سره آواز غائب ته شرک ده دغه شرک نه ده او ته وایي چې مړي ته په یا سره آواز شرک دي دا څومره بې کاره خبره ده .

مقبرې ته چې لاړ شي دا مرده ګان غائب دي که په سترګو یې ګوري ټول غائب دي ستا نه نبي علیه السلام تا ته طریقه او تعلیم څه درکوي السلام علیکم یا اهل القبور نو دا غائب او مړي ته په یا سره آواز دي که نه دي نو څنګه مړي او غائب ته په یا سره آواز شرک ګڼې .

دې نه وروسته مسلسل څه روایات د صحابه کرامو زمانه کې شعاري آوازونه ما ثابت کړې دي :

سنن ابن ماجه جلد ۲ صفحه ۳۹۵ هغه روایت د ضریر البصر چې نبي علیه السلام د توسل طریقه ورته ښودلې وه او د هغه سترګې جوړې شوې وي د هغې الفاظ دا دي :

ویصلي رکعتین ویدعوا بهذا الدعاء : اللهم اني أسألك واتوجه اليك بمحمد نبي الرحمة يا محمد اني قد توجهت بك الى ربي .

هغې کې دا الفاظ دي : یا محمد صلی الله علیه وسلم ، یا رسول الله زه تا مخامخ کوم رب خپل له او دې ځای کې مونږ روایت مستدرك پیش کړې وه د توسل په باب کې چې دا دې صحابي په محضر د نبي علیه السلام کې نه وه شوې بلکې دې بهر شو او دس یې وکړو مونځ یې وکړو ځکه چې راوي وایي چې :

ما طال بنا الحديث . مونږ لا خبرې نه وې اوږدې کړې چې هغه سړي په مونږ را دننه شو نو دا رادننه کیدل دلیل ددې دي چې :

وقد ابصر . نظريې جوړه چې وتلې وه بهر نو د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه غائب دي يا غياب د ديوال نه اخوا او يا غياب د پاکستان نه لرې خو غائب خو شو کنه هغه خو مخامخ نه دي ناست او د يا محمد اني قد توجهت بك الى ربي ، وايي .

او بيا دغه الفاظ په وخت د عثمان ذي النورين دورِ خلافت کې د توسل په مسئله کې ما تاسو ته پيش کړې وه چې هغلته راوي د حديث بل صحابي ته دا ښايي عثمان بن حنيف ته چې هغه ته يې دا الفاظ وښودل چې داسې الفاظ ووايه ستا مشکل به پوره شي هغه بيا هلته دا الفاظ وويل :

يا محمد اني قد توجهت بك الى ربي .

نو په هغه ځای کې نبي اکرم دنيا نه تلې وه ده دا الفاظ د روضې په خوا کې نه دي ويلې بهرې ويلې دي هغې نه ثابتيږي .

دا حديث معجم الصحابة جلد ۴ صفحه ۱۴۸ کې را اخيستې په زيادت د لفظ د يا محمد اني توجهت بك سره ترمذي کې لفظ د يا محمد نشته ځکه مونږ دا د ابن ماجه نه پيش کړو .

صحيح ابن خزيمه جلد ۲ صفحه ۱۲۵ کې زيادت د لفظ د يا محمد په کې دي .

مستخرج الطوسي جلد ۲ صفحه ۴۴۷ ، مستدرك للحاكم جلد ۱ صفحه ۴۵۸، معرفة الصحابة جلد صفحه ۸۰ ، مسند عبد ابن حميد جلد ۱ صفحه ۱۴۷ ، مسند احمد جلد ۲ صفحه ۲۲۵ دا ټول دا ذکر کوي چې الفاظ دا دي :

يا محمد اني توجهت بك .

البته که څوک وايي چې تا خو مخکې وويل چې دا خو آياتونو کې منعه راغلې ده .

نو له هغې نه به يو جواب دا وي چې ممکن دی صحابي دا آواز هغه خت کې کړې وي چې کوم وخت کې دا ايات نه وه نازل شوې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته داسې دعوت مه ورکوي لکه خپلو کې چې يو بل ته ورکوي .

دويمه دا چې هلته ما دا قيد ولګوه که اخص الخواص دا اسم اسم عالمي نه ګڼي صفتي معني ته يې اړوي او عالم وي او په دې پوهيږي نو د هغه لپاره بيا جرم نه دي يا محمد به يې په معنى د صفت کړې شوې سره اخيستې وي دا بعيد تاويل که وکړې شي نو بيا جائز کيږي.

او يا به دا خصوصيت د دغه صحابي شي دا حق خو د رسول الله صلى الله عليه وسلم دي په امت باندې چې هغوي به ادب کوي يا محمد به نه وايي يا نبي الله يا رسول الله به وايي او دې صحابي ته يې خپله دا بښودلي نو بس دا خپل حق ده ورته معاف کړې دي کنه تعليم يې ورکړې دي.

دويم روايت صحيح مسلم جلد ۸ صفحه ۲۳۷ معرب بيروتي چاپ رسول الله مبارک چې مدينې منورې ته راځي هلته دشتو کې را روان دي او دلته د مدينې منورې خلک راوتلي دي:

فصعد الرجال والنساء فوق البيوت. سړي او زنانه د کوټو د پاسه وختل.

وتفرق الغلمان والخدم في الطرق. واړه ماشومان او غلامان په لارو د قباء کې سره خواره شول.

ينادون. چغې وهلې.

يا محمد يا رسول الله يا محمد يا رسول الله.

دا خو صحابه وه کنه دا خو محبت وه داد محبت نداء دوي خو دلته څه غوښتل نه دا صرف محبتي آواز دي دوي څه غوښتې نه دي دا نداء نه ده داد محبت لپاره دوي دا آواز کړې دي د جلوس په شکل را بهر شوي دي يا محمد يا رسول الله يا محمد يا رسول الله.

بريلوي حضرات چې ربيع الاول کې کوم جلوس اوباسي شاهد کې دا پيش کوي دا چې شاهد تر کوم ځايه مطابق دي او نه دي بيا هم يو اصل خو لري چې مونږ هم دغه خوشحالي کوو هغه مدينې منورې ته راغې په خوشحالي کې دوي يا محمد يا رسول الله نعرې وهلې دي

او مونږ چې دنيا ته محمد مصطفى ﷺ نعمت را ښکاره شو مونږ هم په خوشحالي کې يا رسول الله نعرې وهو يو شاهد يو اصل يې د يو ځای نه راويسته اخذ يې ترې وکړو.

دريم روايت: الاربعون في التصوف للسلمي جلد ۱ صفحه ۵ د حضرت عمرِ فاروق رضي الله عنه واقعه ده د جمعې په ورځ په خطبه ولاړ دي.

يصيح. چغه وهي.

يا سارية الجبل يا سارية الجبل.

که غائب ته په يا سره آواز شرک شي عياذاً بالله نو سارية په دغه وخت کې نه وه هاون نومې مقام کې دوه مياشتې فاصله لري وه نو غائب ته يې په يا سره اواز کړې دي.

فقدم رسول من الجيش فقال يا امير المؤمنين لقينا عدونا فهزمونا فاذا صائح يصيح يا سارية الجبل فأسندنا ظهورنا الى الجبل فهزمهم الله تعالى.

دا امداد دی کرامتاً اولياء چې مدد کوي کرامتاً د هغې دغه شکل وي او غائب ته په يا سره آواز ترې ثابتيږي.

آمين الله وهابي فتاوى خپله کې دا حديث را اخيستې دي او ويلې دي چې دې حديث ته چا ضعيف ويلې حق ته نه دي رسيدلې خو هغه څوک چې دلته د کشف ګمان کوي باطل دي وايي هغه څوک چې وايي چې دلته عمرِ فاروق رضي الله عنه ته کشف شوې وه وايي دا باطله خبره ده وايي دا هسې دده په زړه کې راغله چې يوه چغه ووهه دا اوس دده خبره ده او دا ددوي مجتهد دي د وهابيانو.

نو د جمعې د خطبې په وسط کې هسې چغې وهل خو د ليونو کار وي چې ده په سترګو ونه ليدل او ده ته پته وه چې شکست ګډ ده صحابه شهيدانيږي راځه دا خطبه په ځای پريږده او په وسط کې له هغوي سره مدد او کومک وکړه او ده کشف کړې نه وه القاء ورته نه وه شوې هسې يې په زړه کې راغله چې راځه يوه چغه ووهه د خطبې په وسط کې څوک هسې چغې وهي څه هسې چغه يې ووهله د فراست او د کشف نه به انکار وکړي د غائب د يا نه خو

انکار نه شي کولې کنه هسې چغه يې غائب ته وهلې ده مونږ هم هسې چغې وهو يا رسول الله يا ولي شرک ورته وايي.

دارنګې البداية والنهاية جلد ۴ صفحه ۷۶ حضرت خبيب رضي الله عنه چې کله شهيد کيږي هغوي له هغه ځای نه رحمة عالم ته سلام راليږي آخري وخت کې نبي اکرم صلى الله عليه وسلم مدينه منوره کې موجود دي.

وفي مغازي موسی بن عقبة ان خبيباً وزيد بن الدثنة قُتلا في يوم واحد.

په يوه ورځ شهيدان شول.

وان رسول الله صلى الله عليه وسلم سمع يوم قتلا وهو يقول. نبي عليه السلام نه واوريدل شول په کومه ورځ چې دوي شهيدان شول ده مبارک فرمائل:

وعليكما او عليك السلام.

راوي شک کوي چې دا وعليك السلام يې يواځې خبيب رضي الله عنه ته ويلې که دواړو ته يې ويلې دي نو په تاسو دواړو دې زما سلام وي اي خبيب او اي زيد دا خطاب دي د مدينې منورې نه رحمة عالم حضرت خبيب ته کړې دي او هغوي په دې وخت کې شهيدان دي غائب مړي ته يې د وعليك السلام خطاب کړې.

نو السلام عليك يا خبيب له مدينې نه هغه تنې شهيدې د حضرت خبيب رضي الله عنه ته محمد مصطفی کوي او که زه له دې ځای نه السلام عليك يا رسول الله وايمه دا شرک نو هغه څنګه وه نبي اکرم صلى الله عليه وسلم چې يو شهيد ته له بعيد نه وعليكما السلام وايي.

دا ډير بې دينه خلک دي کنه اوس د جماعتِ اسلامي يو ليډر دي صلاح الدين نوم يې دي نو پنډي خواته چې ځي په دې جي ټي روډ دا ديوالونه وګوري ځای په ځای يې ليکلي وي صلاح الدين تيرے عظمت کو سلام، نو دا عربي ته واړوه څه معنی شوه: السلام عليك يا صلاح الدين، نو صلاح الدين د غلته ديوال کې موجود دي چې دوي پرې سلام اچوي نو خپل ليډر ته السلام عليك يا صلاح الدين جائز دي او السلام عليك يا رسول الله بيا شرک دي دا د دوي انصاف دي.

دارنګې المغازي للواقدي جلد ۱ صفحه ۳۱۴ بي بي فاطمة الخزاعية صحابي ده :

قد ادركت . چې دې صحبت د نبي عَلَيْهِ السَّلَام درک کړې دی .

تقول . دا وايي .

رأيتني وغابت الشمس بقبور الشهداء ومعي أخت لي . د غه زمانه کې به د شهداء زيارت ته زنانه تللې .

دا وربانديې دليل دي اوس يې چې مونږ منع کوو د فساد له وجې نه ، ما ته خپل ځان رايادېږي چې لمر راباندې پريوت د قبرونو د شهداء د أحد سره ما سره زما خور وه يعنې د شهيدانو سلام ته تللي ومه هلته راباندې مابنام شو .

فقلت لها . ما دې خور ته وويل .

تعالي . راشه .

نسلم على قبر حمزة ولنصرف . هسې هم مابنام دې په دې لار به تيريدل د حضرت حمزه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سلام به وکړو بيا به ځو .

قالت نعم . وايي زما خور وفرمايل صحيح ده .

فوقفنا . وايي مونږ ودريدلو .

على قبره فقلنا السلام عليك يا عم رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

داد چا نوم اخيستل د چا هغه ذات ته اشاره .

فسمعنا كلاماً . مونږ د قبر نه آواز واوريده :

رد علينا وعليكما السلام ورحمة الله . د حضرت حمزه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د قبر نه آواز وشو چې وعليكما السلام دا دليل د حيات د هغه دي نو دا غائب ته په يا سره آواز دي او بذات خود هغه نوم اخيستې .

دارنګې حلية الاولياء جلد ۵ صفحه ۳۷۳، تولو کتابونو دا حديث ذکر کړې دي ورځ د قيامت چې راشي په دغه ورځ باندې به ژړاګانې وي .

فيرفعون أصواتهم بالنحيب والبكاء . په ژړا او زګیروو باندې به اوازونه پورته کیږي.

فيقولون . دا خلک به وايي .

وا محمداه يا محمد اشفع لمن امر به الى النار من أمتك . يا محمد (صلى الله عليه وسلم) شفاعت وکړه هغه چا ته چې ستا امت کې د هغوي باره کې امر د جهنم شوې دي د هغوي شفاعت وکړه.

اوس دغه وخت کې نبي اکرم صلى الله عليه وسلم مقام محمود کې دي دا په کروړونو خلک به هلته دا چغې وهي وا محمداه يا محمد .

وهابي به هم دا چغې وهي خو که خوا کې دې يو معلوم وهابي ولاړ وه او يا محمد چغه يې ووهله يوه بنه څپيړه هلته هم ورپورې کړه او بنه يې په رمباړو کړه چې تا خو به دا شرک ګڼه اوس څنګه چغې وهي .

دا رنګې عمل اليوم والليلة لابن السني جلد ۱ صفحه ۳۱۹ په خپل سند سره ذکر کوي:

قال كنت امشي مع ابن عمر رضي الله عنه. زه د عبد الله ابن عمر رضي الله عنه سره روان وم.

فخدرت رجله . خپه يې زخمي شوه بوډي شوه .

فجلس . نو دې کيناسته .

فقال له رجل . چا ورته وويل .

اذكر احب الناس اليك . تا ته چې کوم څوک ډير ګران وي هغه را ياد کړه .

فقال . ده وفرمايل .

يا محمداه فقام فمشى . خپه يې بنه شوه بيرته روان شو .

دا حديث ادب المفرد کې امام بخاري هم را اخيستې دي او دا يې ترې ثابته کړې چې د چا خپه بوډي شي نو دې دي د يامحمداه اواز وکړي نو د خپې بوډي والې به يې ختم شي اوس د امام بخاري رحمه الله باره کې مو څه رايه ده هغه د شرک تعليم ورکوه د عبد الله بن عمر رضي الله عنه باره کې مو څه رايه ده.

دارنګي البداية والنهاية جلد ٦ صفحه ۳۵۷ ، جنګ يمامه چې له مسيلمة الكذاب سره شوې وه په دې کې د خالد بن وليد هغه زړه ورتيا ذکر کوي ؛

**ثم وقف بين الصفين ودعا البراز .** د صفونو مينځ کې ودريدلو اعلان کوي پهلواني ته راووځي .

**وقال .** وي ويل .

**انا ابن الوليد العود انا ابن عامر وزيد .** خپلو نيکونو ته اشاره ده .

**ثم نادى بشعار المسلمين .** بيا يې چغه کړه د مسلمانانو شعار چې په دغه ورځ څه وه نو په هغه يې چغه کړه .

**وكان شعارهم .** وه شعار ددوي .

**يومئذ .** په دغه ورځ .

**يا محمداه .** خالد بن وليد د مسيلمة الكذاب چې د خالق منکر نه وه د محمد مصطفى ﷺ د ختم نبوت منکرو او د محمد مصطفى ﷺ د شان منکر په مقابله کې خالد بن وليد د البراز د آواز نه بعد څه وايي يا محمداه .

اوس هم دا نعرې ورته مونږ ځکه وايو او په ديوالونو يې ځکه ليکو چې دوي د خداى جل جلاله منکر نه دي خو شان د محمد مصطفى ﷺ منکر دي د نبي اکرم ﷺ شان نه مني ځکه ورته عاشقان د **يا محمد** ﷺ چغې وهي .

الكامل في التاريخ جلد ۱ صفحه ۳۷۴ کې ليکي چې د يمامه په غزوه کې د صحابه کرامو شعار **يا محمداه** وه .

تاريخ الامم والملوک جلد ۲ صفحه ۲۸۱ کې دا ليکلي دي ګوره دا د نبي اکرم ﷺ د وفات نه وروسته خبرې دي او دا ميدان لرې د يمامې دي .

او هغلته صحابه دي په دې ورځ اوه سوه (۷۰۰) قاريان شهيدان شوې دي هغه همدا ورځ وه چې صحابه راغونډ شول صديق اکبر رضي الله عنه چې دا قرآن کريم را غونډ کړي قاريان شهيدانېږي صبا به قرآن کريم له مخ د دنيا نه لاړ شي نو دوي مجبور شول د قرآن کريم د جمعه

واري کوشش يې بيا وکړو نو دومره صحابه جمع غفيره صديق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عمرِ فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دوي غوندې اشخاص په کې موجود دي او ددوي په مخ کې شعار د مسلمينو د يامحمداه دي ګوري څه غوبنتل شوې هم نه دي صلاة سلام نشتة مطالبه نشته دې ته نداء نه وايي دې ته شعار وايي.

لکه مخکې ما تاسو ته وويل چې يا محمد د شعار په نيت جائز دي په جوماتونو کې که ليکل شوې وي يا په ګاډو کې ليکل شوې وي وغيره مقاماتو کې نو مه يې ورانوي دا نداء نه ده دا صلاة سلام نه دي دا شعار دي نښه ښايي چې زه له هغه جماعت نه يم چې شان د محمد مصطفى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قائل دي.

او رشتيا هم چې مونږ کوم مسجد ته لاړ شو نو چې په هغه مسجد کې دا الفاظ ليکل شوې يې نو مونږ ښه په ډاډه هغه سړي پسې لمونځ کوو او چې کومو کې دې نه دا ياکټ شوې يې بس مونږ ګډوډ شو چې دې سړي کې کار شته دي چې دا يايې ترې کټ کړې وي ځکه نښه ده.

زه بعضې حقائق بيانومه نو کوم خلک چې ما ته بريلوي وايي هغه دا بيان واوري دا چې واوري بس بريلويان نو په هغوي کې هم لږه ساه پيدا شي او خوځيږي چې بس اوس شيخ غلام حضرت ايله مسلمان شو تر اوسه خو وايي ديوبندي کافروه نو ايله مې په دې باندې مسلمان کړي کله وايم چې دا موضوع له سره نه چيړمه چې تاسو ما په دې مسلمانوي له سره دا چيړم نه.

خو لکه حقيقت دي له دې مسئلې سره ظلم شوې دي زمونږ دې احنافو کې روان دي خاصکر د افغانستان علماء چې دوي دې مسئله کې تحقيق نه کوي د بريل په ضد کې را شي دې نه چټ انکار کوي په مجلس کې دي چې د يا رسول الله اواز وکړو نو د ځان ضاربين به هم شمار نه کړي چې څومره ګوزارونه به درباندې کيږي.

او حقيقت داسې نه دي دا ظلم کيږي دا د صحابه کرامو له زمانې نه چې کله د هغوي د منکرِ خدا سره مقابله وه نو الله اکبر نعره يې وهلې لا اله الا الله يې ويلې او د منکرِ محمد مصطفى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره يې چې مقابله راغلې ده عيسوي سره د يرموک په ميدان کې چې د

خالق منکرین نه وه د محمد مصطفی ﷺ منکرین وه نو دوي شعار بدل کړو یا محمد نعره دوي شروع کړه او دغه شان د یمامه په میدان کې دوي د یا محمد نعره شروع کړه دا دهغه چا شعار دي چې کوم څوک په مقابل د شان مصطفی ﷺ د منکر کې مخامخ کیږي نو دا نعره به وهي.

دارنګې البدایة والنهایة جلد ۷ صفحه ۱۰۴، عام الرمادة چې کله راغله د عمرِ فاروق رضي الله عنه په زمانه کې:

عن عاصم بن عمر بن الخطاب ان رجلاً من مزینة عام الرمادة سأله أهله ان یذبح لهم شاة.

چا ورته وویل چې دا ګډ حلال کړه هغه ورته وویل دا تندي وهلې.

لیس فیهن شيء. څه په کې نشته جیګریې ختم دي.

فالحوا علیه. مجبوریې کړو دا مبالغه في السوال یې وکړه.

فذبح شاة. ګډ یې حلال کړو.

فاذا عظامها حمر. د هغې هغه هډوکي هم سره شوې وه.

فقال. نو ده وویل.

یا محمداه. ذبحه یې وکړه چې دننه یې ولید چې د ګډ دننه هډوکي اینه ختم دي نو دې وخت کې چغه کړه یا محمداه.

نو دا اوازیې ولې کړې دي چې یا رسول الله باران وغواړه راته دغه حل دي چې څاروي دې حد ته رسیدلې دي.

فلما أمسی. هر کله چې شپه شوه نو خوب کې نبي اکرم ﷺ یې ولیده ورته وایي.

ابشر بالحیاة. زیرې قبول کړه په حیات.

مراد له حیات نه سبب د حیات دي چې هغه اوبه دي.

جعلنا من الماء کل شيء حي إیت عمر. عمر فاروق رضي الله عنه ته ورشه.

فاقره مني السلام . وایه زما له خوا هغه ته سلام .

نو دا دې د مشکل په وخت کې دې صحابي د یامحمداه آواز کړې دي .

دارنګې الکامل في التاریخ جلد ۱ صفحه ۴۷۸ هغې هم دا راخیستې دي ، او تاریخ الامم والملوک جلد ۲ صفحه ۵۰۹ کې هم دا حدیث را اخیستې ، دارنګې البدایة والنهایة جلد ۸ صفحه ۲۱۰ ، د کربلا میدان کې چې کله شهیدان وشول د حضرت حسین رضي الله عنه خور بي بي زینب بنت علي رضي الله عنه .

وندبت زینب اخاها الحسین واهلها . خپل ورور ندبه یې بیان کړه .

وهي تبکي . او هغې ژړل ویل یې .

یا محمداه یا محمداه صلی علیك الله وملك السماء هذا حسین بالعراء مزمل بالدماء .

په وینو ککړې دي .

مقطع الاعضاء . ټوټې ټوټې دي .

یامحمداه وبناتك سبایا . لمسې او لورګانې ستا هغه چې کوم دي بندیانې دي .

وذریتك مقتلة . بچې دې شهیدان شوې دي .

قال فابکت والله کل عدو وصدیق . وایي دغه لښکر کې دښمان وه که دوستان ټولو پرې وژړل ددې په ژړا باندې .

نو بي بي زینب د کربلا له میدان نه د یامحمداه آواز کوي که داد شرک آواز وي عیاذاً بالله دې ته به یې نسبت څنګه شي .

همدغه آواز الکامل في التاریخ جلد ۲ صفحه ۱۷۸ کې او تاریخ الامم والملوک جلد ۳ صفحه ۳۷۶ کې هم ذکر کړې دي .

دارنګې تاریخ الاسلام د امام ذهبي جلد ۸ صفحه ۵۲۵ د ابو حیرة الرعیني حالات بیانوي :

قال ابن لهیعة کان أبو خیرة یقرأ القرآن في کل یوم ولیلة مرتین .

دده حالات بیانوي نو دې وایي چې ددغه وخت امیر چې وه د مصر چې حوثره نومیده .

يخطب . خطبه يې لوستله .

ويبكي . او ژړل يې .

فوق المنبر فقال ابو خيرة . ابو خيره ورته راپاځيده ورته وې ويل :

يا محمداه ارفع رأسك فانظر ما فعلت امتك بعدك . يا محمداه سر دې راپورته کړه چې امتيان دې وګوره چې څه کوي .

يا هذا اتق الله فان الله يقول : ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونَ ﴾ .

منبر باندې هغه ژړل او دې هغه ته وايي او هلته آواز دا کوي : يا محمداه ارفع رأسك ، سر دې اوچت کړه چې امتيان دې څه کوي .

دارنګې شعب الايمان جلد ٦ صفحه ٦٠ :

اخبرنا ابو علي الروذباري حدثنا عمرو بن محمد بن عمرو بن الحسين بن بقية إملاءً حدثنا شكر الهروي حدثنا يزيد الرقاشي عن محمد بن روح بن يزيد البصري حدثني ابو حرب الهلالي قال حج اعرابي فلما جاء الى باب مسجد رسول الله صلى الله عليه وسلم

ابو حرب هلالي وايي چې يو بدوي راغې حج ته باب مسجد رسول الله ته چې راغې .

اناخ راحلته فعقلها . اوښه يې چوکړه او عقال يې ورته وکړو .

ثم دخل المسجد حتى اتى القبر . روضې ته راغې و دريده مخ د نبي عليه السلام ته .

فقال بأبي انت وامي يا رسول الله جئتك . مور او پلار مې درنه قربان شه راغلې يم تا ته .

مثقلاً بالذنوب . دروند يم په ګناهونو او په خطايا وو باندې .

مستشفعاً بك على ربك لانه تعالى قال في محكم كتابه : ﴿ وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذ ظَّلَمُوا أَنفُسَهُمْ جَاءُوكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللَّهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُولُ ﴾ وقد جئتك بأبي انت وامي مثقلاً بالذنوب والخطايا استشفع بك على ربك ان يغفر لي ذنوبي وان تشفع في ثم اقبل في عرض الناس وهو يقول .

بيا يې خلکو ته مخ کړو وي ويل :

يا خير من دُفنت في الترب اعظمه فطاب من طيبه الأبقاع والاكم

نفس الفداء بقبر انت ساكنة فيه العفاف والجود والكرم

ای غوره د هاغه چا چې تُربې د هغه هډوکي دفن کړي د چا تنه چې دفن ده هغه ټولو کې غوره نو دا خو ټول مخلوق کې غوره شو بس خوشبويه شوي له خوشبويې د هغې نه ټوټې د ځمکې او غونډي ګانې يا جيګ کورونه دا ټول پرې خوشبويه شوي د مديني منورې نفس مې قربان شه له هغه قبر نه انت ساكنة په هغې کې عفاف په هغې کې سخا او کرم دي .

او په بل روايت کې دی :

يا خير من دُفنت بالقاع أعظمه فطاب من طيبهن القاع والاكم

دلته يې اختصار کړې ابن كثير همدغه واقعه ددې آيت په شرحه کې را اخيستې د عصبي په روايت سره چې زما سترګې سره ورغلي رسول الله ﷺ مبارک خوب کې راغې راته يې وفرمايل :

الحق الاعرابي . دې بدوي ته ځان ورسوه او ده ته بشارت د مغفرت وکړه چې ده ته بخښنه شوې ده .

دارنګې فتوح الشام جلد ۱ صفحه ۱۹۷ د يرموک په ميدان کې ۴۱۰۰۰ صحابه کرام او تابعين موجود دي او ددوي شعار دي شعار يوم اليرموك يې عنوان دي الشعار ، چې دلته شعار څه وه .

قال عبد الرحمن وكان خالد امامنا في حملته . په حمله کې دې زمونږ مخې ته وه .

ونحن من ورائه . مونږ وروسته وو .

وكان شعارنا . زمونږ شعار وه :

يا محمد يا منصور امتك امتك . يا محمد زمونږ شعار وه .

دارنګې فتوح الشام جلد ۱ صفحه ۲۴۰ :

وكعب بن ضمرة قلق على المسلمين . جهاد دي په مسلمانانو باندې يو تيز آواز وکړو .

فجاهد عنهم وهو يجول بالراية. جهادي وكړو او جنده يې په لاس کې تاوولهراتاووله.

وينادي. چغې يې وهلي.

يا محمد يا محمد.

دادي صحابي دي د جنګ په میدان کې د کفارو مقابله کې قومندان د جهاد دي يا محمد نعرې وهي.

دارنګې فتوح الشام جلد ۲ صفحه ۲٦۵ په دې صفحه کې د بونسی فتحه ذکر کوي په دې فتحه کې دا وايي چې:

وکان شعار المسلمين تلك الليلة ينادون يا محمد يا محمد يا نصر الله. دا شعار وه د مسلمينو په دغه شپه باندې چې چغې وهلې يا محمد يا محمد.

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱۰ صفحه ۳۹۰ ابن عباس رضي الله عنه يې راوي دي:

قال ان لله ملائكة فضلاً سوى الخلق. د خدای تعالی څه ملائک دي سواد مخلوق عام نه دا خاص دي.

يكتبون ماسقط من ورق الشجر. د ونو پاڼې ليکي.

فاذا اصابت احدكم عرجة في سفر. چا ته چې په سفر کې تکليف پيدا شو.

فليناد. چغې دې ووهي.

أعينوا عباد الله رحمكم الله. مدد وکړي زما اي د خدای بنده ګانو الله دې په تاسو رحم وکړي.

هغه فرشتې چې په اوراقو د شجرو مقرري دي نو شجر خو هر ځای کې وي نو دغلته هغه فرشتې شته دي نو چې مشکل درباندې راغې وايي دا آواز وکړه:

اعينوا عباد الله رحمكم الله. زما مدد وکړي اي د خدای بنده ګانو هغه څوک دي فرشتې دي نو فرشتو نه به مدد وغواړي مدد به درسره وشي.

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱۰ صفحه ۴۲۴:

ما یقول الرجل اذا ندت به دابته أو بعیرفي سفرٍ . په سفر کې چې د چا اوبن لیوني شي او دده نه لاړ شي نو دا به څه کوي .

حدثنا یزید بن هارون قال اخبرنا محمد بن اسحاق عن ابان بن صالح ان رسول الله ﷺ قال .

رحمت عالم و فرمایل :

اذا نفرت دابة احدکم . کله چې په نفرت کې شي دابه ستاسو کې د یو کس .

او بعیره بفلاة من الارض . په ځمکه کې په دشته کې .

لا یری بها احداً . څوک ویني نه .

فلیقل اعینوني عباد الله فانه سیعان . ای د خدای بنده ګانو زما مدد وکړي دده مدد به وشي .

دا غائب ته د یا آواز دي او عباد الله دلته څوک دي که ملائک اخلي که رجال الغیب اخلي اولیاء اخلي دغه مراد دي .

دارنګې مصنف ابن ابي شیبة جلد ۱۲ صفحه ۳۲ :

حدثنا ابو معاویة عن الاعمش عن ابي صالح عن مالك الدار قال وکان خازن عمر علی الطعام قال اصاب الناس قحط في زمن عمر رضي الله عنه فجاء رجل الی قبر النبي ﷺ .

یو سړي راغې قبر د نبي علیه السلام ته دا بلال بن حارث المزني دي چې تحقیق یې په مسئله د توسل کې تیر شوې دي .

فقال یا رسول الله استسقِ لأمتك فانهم قد هلکوا . امت لپاره باران وغواړه دوي هلاک شو .

فاتی الرجل في المنام فقیل له . نبي علیه السلام دې شخص ته خوب کې راغې .

إئت عمر فاقرئه السلام واخبره انکم مستقیمون . باران به درباندې وشي .

دارنګې النجوم الزاهرة في ملوک مصر والقاهرة جلد ۳ صفحه ۲۱۷ په هغې کې اشعار راخلي:

الا يا رسول الله يا اکرم الورىٰ ومن جوده خير النوال ينيل

خبردار يا رسول الله اکرم د خلکو ستا د سخا نه هر قسم انعامات حاصليږي.

دارنګې شذرات الذهب في اخبار من ذهب جلد ۱ صفحه ۳۰۲:

يا اکرم الناس من عجم ومن عرب ويا ذوي الفضل والاحسان والحسب

اى اکرمه د خلکو په عرب او عجم کې اى ذوي الفضل د د احسان او په حسب کې.

عقد الجمان في تاريخ اهل الزمان جلد ۱ صفحه ۲۷۶: د قاضي تقي الدين بنت اعز هغه عود قضى ته واقعه بيانوي:

ولما قرب اوان الحج قصد الحجاز وقضى أمره إلى أن أتى مدينة النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وكان قد سبق من مكة بايام واقام في الحجرة النبوية.

د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په روضه کې مقيم شو.

وقد صنف قصيدة. او دلته يې جوړه کړه يوه قصيده، دلته يې اشعار وليکل.

مدح فيها النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ والتزم. او دا يې په ځان لازم کړې وه.

ان لا ينشدها الا وهو واقف على باب الحجرة.

ډير اوږده شعرونه وه سل (۱۰۰) بيته يې لرل.

او دا يې په ځان لازم کړه چې دا خو مې جوړ کړل دلته خو زه به رسول الله مبارک ته مخامخ سلام ته ودريږم دا به ورته وايمه دا تاريخ بدر الدين عيني ليکلي دا ډير عمده تاريخ دي عقد الجمان في تاريخ اهل الزمان داد بدر الدين عيني دي نو وايي:

على باب الحجرة مكشوف الرأس. لوڅ سر ودريده.

وكان ينشدها ويكثر الاستعانة على من ظلمه. چا چې پرې ظلم کړې وه د هغوي خلاف يې مدد غوښتو ډير زيات.

والتزم لا يرجع حتى يسمع بما يسره.

او دا يې ويلې وه چې دا سل (۱۰۰) کرېز نعت او شعر به هغې پورې به يې وايم او لوڅ سر به ولاړ يم تر څو چې د روضې نه آواز وا ورمه هغې پورې به دا وايمه .

**ويعلم ان حاجته قد قضيت** . وايي داسې زما حاجات پوره کيږي .

**وهي قصيدة طويلة منها قوله : يا اكرم الثقلين بل يا سيد الكونين**

اي اکرمه د ثقلينو د انس او جن اي سرداره د کونينو .

**دعوة موقن بك مهتدي** . زه تا پسې روان يمه او په سمه لاريم او موقن په تا باندې يم. دا سل بيتونه وه .

**ولم يزل ينشدها ويستغيث** . او مدد يې غوښتو .

**إلى أن رأى في نومه ان حاجته قضيت فركب مع الركب** . خوب يې چې وليده بيا روان شو .

امام جامي رَحِمَهُ اللَّهُ د نحوې امام دی د يوسف زليخې په اوله صفحه ده يو شعر ويلې دی :

**دی مهجوري بر آمد جان عالم    ترحم يا رسول الله ترحم**

دا شعر دې يوائې يا رسول الله نه دی بلکې د ترحم سوال هم شوې دی .

او د ديوبند په علماوو کې دا خلک داسې وايي چې دا آواز د ديوبند او بريل نزاعي دی دا غلطه ده داد پنجپير د اهل سنت نزاع ده دا اوس پنجپيريان ځان ته ديوبنديان وايي ديوبنديان يې دوکه کړي ځان سره .

نو د ديوبند علماء کې نفحة العرب مصنف اعزاز علي ديوبندي هغه يو کتاب ليکلي په نوم د تاريخ المصنفين سره د امام جامي حالات په کې وګوري نو واقعه را اخلي وايي چې دې کله حج ته تللو نو د مديني منورې ګورنر ته رحمت عالم خوب کې راغې او دې يې معرفي کړو ورته چې داسې يو سړي را روان دی ما ته يې دا رک مه را پريږده .

هغه ګورنر په لاره کې ولاړ دی د هغه وخت خو سم ګورنران وه د نن زمانې غوندې وهابيان نه وه دا خو خوب ګوري نه او که يې وګوري بيا به وايي دا **اضغاث أحلام** دی عياذاً بالله

هغه لاړو د قباء لاره کې ولاړ دي پياده خلک را روان دي امام جامي يې وپيژنده راکوز يې کړو ګورنر ګمان وکړو چې دا ګني غټ مجرم دي زولني لاس خپو کې ورته واچولې بندي يې کړو په صبا شپه باندې بيا ورته رحمت عالم خوب کې راځي وايي زما دا عاشق دې ولې بندي کړې دي ·

وايي تا وويل چې دا مه راپريږده ما وويل چې دا به مجرم وي مجرم نه دي ده په عجمو کې زما په مينه کې يو شعر ويلې دي وايي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خوب کې دا شعر ورته وويل :

ترحم يا رسول الله ترحم          دي مهجوري بر آمد جان عالم

وايي دا شعر يې ويلې او دا يې له دومره مينې نه ويلې دي که په دې جذبه زما روضې ته ودريږي او دا شعر راته ووايي نو زما غيرت نه برداشت کوي چې زه لاس ونه باسم او له ده سره په لاس ستړي مشي ونه کړمه ·

تاريخ المصنفين اعزاز علي ديوبندي د ديوبند عالم دي د امام جامي حالاتو کې دا را اخيستي ده دغه شعر په وجه يې دده تعريف کړې دي ورته چې ده دا شعر ويلې دي په دې کې د ترحم يا رسول الله آواز دي که د ديوبند علماء د يا رسول الله آواز سره مخالف وي نو څنګه په خپلو کتبو کې د يا رسول الله دومره تعريف را اخلي ·

نو دا نزاع د پنجپيريانو ده له اهلسنت سره نو وايي بيا لاس ورکول مې نه غوښتل چې امت کې فتنه جوړه شي او فتنه جوړيږي ډير خلک بيا انکار کوي دا نه شي راويستلې او دا يې نه دي راويستلي له حقيقت نه انکار راځي نو دا دی جامي صاحب هم دا آواز کړې دي ·

دغه شان شاه ولي الله رَحِمَهُ اللهُ اطيب النعم في مدح سيد العرب والعجم يوه قصيده ليکلې ده په اشعارو کې او د هغې په صفحه ۸ کې په هغې کې دې شعر وايي :

ينادي ضارعاً بخضوع قلب          وذل وابتهال والتجاء

رسول الله يا خير البرية نوالك ابتغي يوم القضاء

نو رسول الله يا خير البرية دا دده الفاظ دي ·

شاه ولي الله رَحِمَهُ اللهُ د هند نه چغه وهي يا خير البرية په شعر کې ، دا رنګې قصيده برده چې عرب عجم کې معروفه ده ·

اوس وهابیان وایي چې داد شرکیاتو نه ډکه ده عیاذا بالله د هغې الفاظ هم دادي :

یا اکرم الخلق ما لي من الوذ به سواك عند حلول الحادث العمم

غټې حادثې او بلاګانې چې راشي زه چې پناه یا اکرم الخلق په بل چا نیسم ولې به یې نیسمه .

دارنګې قصیده د زین العابدین کې راځي :

یا رحمة اللعالمین ادرك لزین العابدین .

او قصیدة النعمان چې امام ابو حنیفه رحمه الله لیکلي په اشعارو کې له ما سره وه چا رانه پټه کړه هغه کې امام ابو حنیفه رحمه الله وایي :

یا سید السادات جئتك قاصداً ارجو رضاك واحتمي بحماك

ای سید السادات تا ته راغلې یم ګوره مدینې منورې ته راتلل د امام ابو حنیفه رحمه الله بقصد الزیارة وه کنه .

جئتك قاصداً . ارجو رضاك . ستا رضا لټومه .

واحتمي بحماك : په خپله ساتنه کې مې وساته .

دا چند روایات د یا محمد او یا رسول الله باره کې چې راغلې وه هغه پیش شول د غه تعصب له ذهن نه وباسي په مساجدو کې یا مه ورانوي داد شعار او نبښې لپاره لیکل شوې دي او جائز دي څه باک نه کوي .

**سوال :** شیخ حسن جان صاحب نه چا تپوس وکړو د یا رسول الله متعلق هغه وویل بریلویانو ته ناجائز دي او مونږ ته جائز ، دې خبره کې کومو باریکیو ته اشاره ده ؟

**الجواب :** ما نه ولې تپوس کوي زه څه عالم بالغیب خو نه یمه چې دې هغه د زړه په رموزو عالم یمه چې دې کې څه ته اشاره کړې ده ته به یې شاګردې یې له هغه نه به دې تپوس کړې وه چې دې خبره کې ستا څه ته اشاره ده خو کیدې شي د غې خبرې ته یې اشاره کړې وي چې څوک په استمداد کې اولیاء مُمدي حقیقي ګرځوي دا په شان د شیعه ګانو عقیدې د شرک ته مفضي کیږي که هغې ته یې اشاره کړې وي نو صحیح ده دا څومره انبیاء او لیاء نه

مددونه چې غوبنتل شوې دي دا په شکل د تسبب او توسل باندې وي دا ممدِ حقیقي نه وي ممدِ حقیقي اله العالمین دي او که چا په استمداد کې دا وساطه حقیقت ته ورسوله نو دا عقیدَه شرکي ده دا په شان د شیعه ګانو دي .

ګورئ زه ایران ته تللې وم مونږ او تاسو په ګاډو کې لیکو الله نګهبان یا خدا حافظ دا لیکو او په ایران کې په ګاډو دا لیکل شوې یې علي نګهبان ، د هغوي دا الفاظ دي .

او بله دا چې زه له شیراز نه تهران ته روان ومه دا ډیر اوږد سفر دي او یواځې ومه تقریباً یوه ورځ مزل جوړیږي نو زه په سفر کې ومه او یوه بوډې ښځه په یو بازار کې شپه وه ګاډي ته راوختله سوالګره وه نو سوالګره چې راوختله نو دا زمونږ د پاکستان افغانستان سوالګر چې سوال کوي نو وايي الله دې وبخښه څه راکړه نو هغې بوډۍ سوالګرې وویل :

علي ترا ببخش چیزي بتي ، علي دې وبخښه څه راکړه .

نو ګورئ دا هغه څه دي چې د خالق مقابله کې دوي مؤثرِ حقیقي ګڼلي دي هغوي هم دیا علي او ازکوي خو هغوي یې ممدِ حقیقي ګڼي د تسبب او توسل په معنی باندې نه استعمالوي هغه مفضي کیږي عقیدې د شرک لره .

ممکن د شیخ حسن جان صاحب دې ته اشاره وي که څوک په دې استمداداتو کې نبي اکرم ﷺ مؤثرِ حقیقي ګرځوي اولیاء مؤثرِ حقیقي ګرځوي بیا دا جائز نه دي دا چې کوم ویل شوي دي یا شعارونه دي یا محبتاً دي یا استمداد د خواصو دي چې هغوي اهل د مراقبې دي یا یې د روضې سره کړې دي نو هغه کې بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَام مؤثرِ حقیقي نه ګرځوي هغه سبب او وسیله ګرځوي په دغه معنی باندې .

مسئلة النداء الى الغائب ختمه شوه

